# شریعت

ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسيس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ٦۹۱ ګڼه / سه شنبه ۲٦ شعبان‌المعظم ۱٤٤٦ هـ.ق / د کب ۷مه ۱٤۰۳ هـ.ش / ۲۵ فبروري ۲۰۲۵ ميلادي


## د اوبو نړيوال کنفرانس په اړه د افغانستان اسلامي امارت د رييس الوزراء پيغام!

# اوبه د ژوند سرچينه او د هېواد په کچه يې غوره مديريت د وخت اړتيا ده

نحمده و نصلي علی رسوله الکريم

اما بعد:

اللـه تعالـی په قـران مجيـد کې فرمايي،ژبـاړه: «او موږ له اسـمانه برکتي اوبه نازلې کړې، بيا مو په هغو سره باغونه او د رېبلو وړ کښتونو، غلې دانـې را زرغونې کـړې، او د کجورو دنګې ونې مو پيدا کړې چې د هغو د پاسـه ډک وږي يو د بل د پاسته پراته وي، د بنـده ګانـو د روزۍ لپاره او په دې سره مو مړه سيمه راژوندۍ کړه له همداسې وي»(۱۱)( سوره ق) صدق الله العظيم.

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته

اوبه د ژوند سرچينه او د انساني ټولنې د بقا او پرمختګ له اساسـي عواملو ګڼل کېږي. په ټولو هېوادونو کې غذايي امنيت، عامـه روغتيا او اقتصادي وده په يو ډول تـر اوبو پورې اړه لري.ټولو تـه معلومه ده، چې پـه نړيواله کچه اقليمـي بدلونونو، ناکافـي بارانونو، ويجاړوونکو سـېلابونو او مسلسلو وچکاليو جدي ستونزې ... ۳مخ

ملا برادر اخوند:

# له امکاناتو په استفادې به د اوبو د غوره مديريت لپاره اساسي ګامونه پورته شي



د رياست‌الوزراء اقتصادي مرستيال ملا عبدالغني بـرادر اخوند پرون د اوبـو نړيوال ځېړنيـز کنفرانس کې ګډون او وينا وکړه.د رياست‌الوزراء اقتصادي مرستيال ياد کنفرانس ته د خپلو خبرو پر مهال وويل؛ اوبه د الله تعالی يوازينی بې بديله نعمت دی او له هغه پرته د انسـانانو، حيواناتو او نباتاتو ژونـد، د هېوادونو اقتصادي وده او پراختيا امکان نه لري.د اسلام مبارک دين د يوې اسلامي ټولنې په توګه موږ ته له اوبو سره د سم چلند په اړه دينـي مکلفيت راجع کوي او له بل لوري له نړۍ سـره د سيالۍ، اقتصادي ودې او د راتلونکو نسلونو د حقونو خوندي کولـو لپاره د اوبو پايښت لرونکی ... ۳مخ

## تېره مياشت د وسپنې پټلۍ له لارې ۳۶۷۲۷ ټنه سوداګريز مالونه صادر او ټرانزيټ شوي

د ټولګټو چـارو وزارت وايي چې د روان کال د سـلواغې مياشتې له پيـل څخه تر پايه پـورې، د هېواد د اوسـپنې پټلۍ له لارې ۴۱۴ زره ۸۸۳ مټريک ټنه انتقالات ترسـره شوي دي.باختر اطلاعاتي آژانس ته د ټولګټو چارو وزارت د رسـنيز دفتر د معلوماتو لـه مخې؛ په ياده موده کې د حيرتان وسپنې پټلۍ له لارې ۳۲۸ زره ۹۷۰ ټنـه، د آقينې وسپنې پټلۍ له لارې ۲۱ زره ۹۵۹ ټنه، د تورغونډۍ وسـپنې پټلۍ له لارې ۵۵ زره ۵۳۶ ټنـه، د خواف - هرات وسپنې پټلۍ ... ۳مخ



د کرنې وزير:

## ازبيکستاني پانګوال دې په خپلو توليداتو کې د افغانستان له خامو موادو ګټه پورته کړي



د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ وزير مولـوي عطاالله عمـري، چې د يو حکومتي پلاوي په مشرۍ ازبيکستان ته سفر کړی و، د تاشکند په ښار کې له صنعتي پارک څخه ليدنه وکړه.دغه صنعتي پارک چې پـه ۱۰۰ هکتاره ځمکه کې جوړ شـوی، په بېلابېلو برخو کې لکـه د وسـپنې توليد، د سرو خونو جوړول او د لمريزو تختو جوړولو په برخه کې فعاليت لري.د دې ليدنـې په ترڅ کـې، د کانونو او پټروليم وزيـر ملا هدايت‌الله بدري او د ټرانسپورت او ملکي هوايي چلند وزير مـلا حميدالله اخونـدزاده، د کرنې وزير ملتيا کوله.د کرنې وزير له ازبيکستاني پانګوالوغوښتل، چې په خپلو توليداتو کې د افغانستان له خامو مـوادو ګټه واخلي، چـې په وينا يې افغانستان له بډايه طبيعي زېرمو څخه برخمن دی.

## زابل کې د پټې خزانې د ليکوال مقبره رغول کېږي

د زابـل ولايت د اطلاعاتـو کلتور رييس مولوي رحمـت الله حماد د پټې خزانې ليکـوال محمد هوتک له مقبرې څخـه د ليدنې پر مهال د دغـې مقبرې د رغولـو خبر ورکړی دی.ښـاغلي حماد د محمد هوتک مقبره د زابل لـه تاريخي ابدو بللې په خبره يې، دغه رياسـت په پام کې لري د محمد هوتک مقبرې ودانۍ او استنادي دېوال ورغوي.مولوي حماد همـداراز ويلي، د زابـل د تاريخي ځايونو او ابدو بيارغونې او سـاتنې ته ځانګړې پاملرنـه کوي.د محمد هوتک مقبره د زابل سيوري ولسوالۍ مموکلـي موقعيت لري.پټه خزانه د هوتکي پاچا شـاه حسين هوتک د واکمنۍ په مهال نامتو ليکوال محمد هوتک هغه تذکره ده چې له ۱۱۴۱ بيا تر ۱۱۴۲ قمري کال ليکل شوې ده.په دغه کتاب کې د پښتو ژبې د پنځوسو شـاعرانو او ليکوالانـو ژوند ليکونه راټول شوي دي.



## کابل کې د مرکزي زون د ولايتونو د مسئولينو ترمنځ د همغږۍ غونډه ترسره شوه



د هېـواد د مرکزي زون د ولايتونو د واليانـو، امنيـه قومندانانـو، د استخباراتو د رئيسانو او د لواګانو مسـوولينو غونډه، پرون د کابل د والي ملا امين الله عبيد ... ۳مخ

## سږ کال له افغانستانه زرګونو سيلانيانو ليدنه کړې



**شريعت:** د اسـلامي امارت په بيا واکمنېدو سـره هېواد تـه د نړۍ له بېلا بېلـو هېوادونو څخـه زرګونه بهرني سيلانيان راغلي او د هېواد له هر ګوټ څخـه يې ليدنه کړې ده.د افغانتور رياست د مسؤلينو په وينا، چې ۱۴۰۳ هجري شمسـي کال د پيل څخه تر اوسه هېواد ته د ۲۰۵۰ څخه زيات بهرني سيلانيان راغلي او بېلابېلـو ولايتونو ته لېږل شـوي دي.د افغانتـور رياسـت اجرائيوي رييس محمد نبي بهاء د شـريعت ورځپاڼې خبريال تـه وويل: چې دا مهال په هېواد کې د ۴۵۰۰ سياحتي شـرکتونه شـتون لري چې په تېرو يوولسو مياشـتو کې ۱۳۲۶ نوي او تمديد شوي سياحتي شرکتونو ته هم د فعاليت جوازونه ورکړل شوي، چې د ټيکـټ خرڅولو، د حج او عمرې ذايرينو ته د ويزو خدمتونونه ... ۳مخ


د اسلامي اقتصاد له نظره د کار او توليد ارزښت

۲مخ

د رحمت، مغفرت او له اور څخه د خلاصون مياشت

۲مخ


## د يو شمېر تاريخي آثارو او تفريحي بڼونو د ساتنې په اړه لازم تصميمونه ونيول شول

د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د هنر او کلتور د معيـن مولوي عتيق الله عزيزي په مشرۍ، د لرغون پوهنې کمېټې نوبتي غونډه ترسره شوه. باختر آژانس ته په رارسېدلي خبرپاڼه کې راغلي چې پـه دې غونډه کې، ارزګان کې د ترلاسه شويو يو شمېر تاريخي اثارو د تثبيت ... ۳مخ



## سرمقاله

# د بريا راز په څه کې نغښتی!؟

ټولو ته مالومه ده، چې افغان ولس په ډېرو قربانيو او سرښـندنو په دا تېره يوه پېـړۍ کې د نړۍ درېيو ځواکمنو قدرتونو ته ماتې ورکړې او ګران وطن يې له ظالمانه اشـغال څخه خلاص کړی او د خپل دين، ناموس او خپلواکۍ په ساتنه کې يې هرې قربانۍ ته غاړه اېښې، چې په دغه مقابله او مبارزه کې يې له ټولو مهمه وسله ايمان، عقيده او ديني احساسات وو- مطلب دا چې همدا ديني قيادت و، چې د هېواد لکونه ولسونه يې ترشا ودرېدل، خبره يې واورېدل شـوه، خلک منظم شول او د دښمن له خورا مجهزو لښکرو سره يې په ډېره مېړانه ډغره ووهله- دا دی له نېکه مرغه يو ځل بيا افغانان د خپل ديني قيادت ترشا را غونډ شوي او د يو خپلواک اسلامي نظام د ټينګښت او هېواد بسياينې لپاره هڅه هاند کوي. پر دې اسـاس لازمه ده چې اوس زموږ مشران هم د خپلو وګړو خصوصاً رسمي مسؤلينو د ديني روزنې او ټولو معنوي ارزښتونو د پالنې لپاره پوره پوره هڅې وکړي، ځکه اوس د امتحان دوره ده، اوس ديني علماء د هېواد پر وسـايلو او شتمنۍ مسـلط شوي او د بيت المال هر څه د دوی په لاس کې دي، پيسـې له دوی سـره دي، موټر د دوی او استوګنه يې هم په ښـارونو او لوکسو کورو کې ده- دا وخت نو که سرې د قرآن مجيد او نبوي سنتو سپارښتنو ته ځير شي، خامخا به يې ډېر خطرناک ازمېښت وګڼي او د آخرت له وېرې به يې زړه ولړزېږي همدا وجه ده چې اوس نو يو بل ته د حق او خير توصيه، د الله تعالی پر عبادت، ذکر او لمانځه کلکه سپارښتنه او له ټولو مهمه دا چې په ګردو رسمي ادارو کې د قرآن او حديث او نورو ديني مذاکرو لپاره يو څه وخت بېلول له دغه خطرناک وضعيت نه د سلامتيا لپاره خورا زيات اړين دي- ځکـه دا يو ثابت حقيقت دی چې که ديني وعظ او نصيحت نه وي نو په تدريجي توګه ډېر ملتزم مسلمان هم بالآخره د غفلت ژورې کندې ته غورځېږي، چې پای يې يوازې هماغه سـتر هلاکت دی او بس- موږ بايد هېڅکله دا واقعيت له ياده ونه باسو، چې خدای ... ۳مخ

## کندز کې ۴۵ روغتيايي مرکزونو ته طبي او غير طبي توکي وېشل شوي



د کندوز ولايت سـيمه ييز چارواکي وايي چې د جيک بنسټ په دغه ولايت کې ۴۵ روغتيايـي مرکزونو ته طبي او غير طبي تجهيزات وېشلي دي.په دې اړه د کندوز ولايت د عامې روغتيا رييس ډاکټر محمدالله حکمت ويلي چې د نوموړي بنسټ له لوري د خپلو بشري مرستو په دوام کې، دې ځانګې ته يو امبولانس او په ټول ولايت کې د ۴۵ روغتيايي مرکزونو لپاره ۳۵ طبي او غير طبي توکي مرسـته کړي دي. د دولتـي باختر خبري اژانـس د راپور له مخې، هغه د جيک انسټيټيوټ دا اقدام د طبي خدماتو د ښـه والي په لور يو اغېزمن ګام وګاڼه او ټينګار يې وکړ چې دا ډول مرستې کولی شي د روغتيايي مرکزونـو ظرفيت پياوړی کړي ترڅو ناروغانو ته غوره خدمات وړاندې کړي.پـه ورته وخت کې، په کندوز کې د جيک انسټيټيوټ ولايتي مشر ډاکټر سيد داود غني وويل چې دا مرسته د روغتيا سيستم د ملاتړ او د طبي مرکزونو د اړتياوو د پوره کولو لپاره چمتو شوې ده.

# د اسلامي اقتصاد له نظره د کار او تولید ارزښت

**محمد قاسم عزام**

اسلام د بشري ټولنې د سوکالۍ، عدالت او اقتصادي ثبات لپاره داسې جامع اصول وضع کړي چې د انساني کرامت ساتنه کوي او ټولنیز پرمختګ ته وده ورکوي. کار او تولید د اقتصاد اساسي ستنې دي، چې د هرې ټولنې د ودې او پرمختګ لپاره حیاتي رول لري. اسلامي اقتصاد د کار، مزد، تولید او پانګونې په اړه ځانګړي اصول لري، چې د عدالت، انډول او ټولنیز خیر پر بنسټ ولاړ دي. دا اصول نه یوازې د اقتصادي سرچینو عادلانه وېش ته توجه کوي، بلکې د استثمار مخنیوی، د انساني هڅو قدر او د ټولنې هر غړي ته د مساوي فرصتونو برابرولو ته هم ژمن دي. له همدې امله، اسلامي اقتصاد د تولیدي سرچینو د متوازن وېش، د مزدور د حقونو ساتنې او د اقتصادي فعالیتونو د شفافیت لپاره واضحې لارښوونې لري، ترڅو ټولنه له اقتصادي بې‌عدالتۍ، استثمار او سودي نظام څخه خوندي وساتي.

د کار ارزښت او د مزد عدالت

اسلامي شریعت کار یوازې د عاید د لاسته راوړلو وسیله نه ګڼي، بلکې دا د انسان د کرامت، عزت او ټولنیز مسؤلیت یوه مهمه برخه بولي. هر مشروع او ګټور کار، که هغه فکري وي که فزیکي، د اسلام له نظره ارزښت لري او مزدور ته د هغه د هڅو مطابق د عادلانه مزد ورکولو ټینګار شوی.

اسلامي اقتصاد د عدالت او اخلاص پر اصولو ولاړ دی او مزدوران د ټولنې هغه طبقه ده چې ټول اقتصادي نظام وربانديې متکي دی. له همدې امله، اسلامي شریعت حکم کړی چې مزدور ته باید د هغه حق پرته له ځنډه ورکړل شي.

رسول الله ﷺ فرمایلي: "مزدور ته یې مزد ورکړئ مخکې له دې چې د هغه خولې وچې شي." دا حکم یوازې اخلاقي نه، بلکې شرعي او اقتصادي عدالت ته اشاره کوي. مزد نه باید چې وځنډېږي، نه باید چې کم ورکول شي او نه د مزدور هڅې نادیده ونیول شي. دا اصل د اقتصادي استثمار مخه نیسي، ځکه چې که مزدور ته یې د زحمت مطابق مزد ور نه کړل شي، دا ظلم دی او ظلم د ټولنې د فساد سبب ګرځي.

اسلامي اقتصاد د مزدور د حقونو ساتلو ته ځانګړې پاملرنه کوي. دا حکم د مزدور او مالک ترمنځ خاصه معامله نه ده، بلکې د ټولې ټولنې اقتصادي ثبات ورسره تړلی دی. که مزدور ته کم مزد ورکول کېږي، نو د هغه د ژوند معیار راټيټېږي، چې دا د ټولنیز ناورین، جرمونو او بې‌وزلۍ سبب ګرځي. برعکس، که مزد عادلانه وي، نو نه یوازې مزدور، بلکې ټولنه او اقتصاد دواړه وده کوي.

په اسلام کې د مزد ټاکلو اصول د عدل پر بنسټ ولاړ دي. مزد باید د کار د سختوالي، مهارت او تولیدي ارزښت ته په کتو وټاکل شي. اسلام د استثمار ضد دی او امر کوي چې د مزدور ارتیا ته پاملرنه وشي. د حضرت عمر رضي الله عنه دا خبره مشهوره ده چې کله به یې د دولتي کارکوونکو لپاره معاش ټاکه، نو دا یې سنجوله چې هغوی باید د خپلو اړتیاوو پوره کولو ته زړه نا زړه نه شي.

که د مزد عدالت ته پاملرنه وشي، نو مزدور هڅه کوي چې ښه کار وکړي، تولید زیات کړي او اقتصاد ته ګټه ورسوي، خو که استثمار وي، مزدور به بې‌حوصلې شي، تولید به کم شي او ټولنه به له اقتصادي بحران سره مخ شي. عادلانه مزد د اقتصادي ثبات، ټولنیز عدالت او د انساني کرامت ساتلو لپاره حیاتي اهمیت لري او همدا اصل د اسلامي اقتصاد بنسټ جوړوي.

په اسلامي اقتصاد کې د مزدور، سوداګر او پانګوالو حقونه

اسلام د اقتصادي نظام د توازن لپاره درې اساسي عنصرونه ټاکلي دي: مزدور، سوداګر او پانګوال، چې هر یو یې د تولید په بهیر کې ځانګړی رول لري. مزدور د خپلې بدني یا فکري هڅې له لارې تولید ته وده ورکوي، سوداګر تولیدي توکي بازار ته عرضه کوي او اقتصادي تبادله رامنځته کوي او پانګوال د مالي امکاناتو برابرولو له لارې د تولید پراخولو ته زمینه برابروي.

اسلامي اقتصاد د دې درېیو برخو ترمنځ د عادلانه وېش اصل ته ژمن دی، څو یوه طبقه له بله استثمار نه شي او ټولنیز عدالت تأمین شي. مزدور ته باید داسې مزد ورکړل شي چې د هغه د ژوند اړتیاوې پوره کړي. د اسلامي فقهې له نظره، مزد باید د کار د سختوالي، د مزدور اړتیا او د بازار د حالاتو مطابق وي. امام ابویوسف رحمه‌الله په "کتاب الخراج" کې د مزد عادلانه ټاکل د دولت مسؤلیت ګڼي، څو مزدوران د ظلم او استثمار ښکار نه شي.

سوداګر ته، چې د اقتصادي تبادلې مهم عنصر دی، شفافیت او صداقت اړین دی. د اسلامي سوداګرۍ اصول حکم کوي چې سوداګر باید رښتیني وي، احتکار ونه کړي، درغلۍ ته لاس وانه چوي او د بازار طبیعي عرضه او تقاضا ته درناوی وکړي. رسول الله ﷺ فرمایلي: "صادق او امین سوداګر به د قیامت په ورځ له پیغمبرانو، صدیقانو او شهیدانو سره وي." (ترمذي) دا حدیث د سوداګرۍ د اخلاقي اصولو ارزښت بیانوي او ښیي چې تجارت یوازې د مالي ګټې وسیله نه، بلکې د اخلاقي مسؤلیت یوه مهمه برخه ده.

پانګوالو ته اجازه شته چې خپله پانګه په حلالو چارو کې ولګوي، خو اسلامي اقتصاد د سودي معاملاتو سخت مخالفت کوي. قرآن کریم فرمایي: "الله تعالی سود له منځه وړي او صدقه ډېروي." (البقره: ۲۷۶) له دې څرګندېږي چې پانګوال باید خپله پانګه د تولید، تجارت او خدماتو په هغو برخو کې ولګوي چې ټولنې ته یې ګټه ورسوي، نه دا چې د سود، احتکار او استثمار له لارې عاید ترلاسه کړي.

د اسلامي اقتصاد موخه دا ده چې ټولنیز عدالت رامنځته شي او هر فرد ته د خپل رول مطابق حق ورکړل شي، څو اقتصادي نظام د عدل او انصاف پر بنسټ ودان شي.

د اسلامي فقهاؤ له نظره د تولید او کار ارزښت

د مختلفو فقهي مکتبونو عالمانو د تولید او کار ارزښت ته ځانګړې پاملرنه کړې ده. حنفي فقهاء د کار پر ارزښت ټینګار کوي او مزد ته د "اجرت" حیثیت ورکوي. دوی د "کتاب الخراج" پر بنسټ دا نظر لري چې دولت باید د مزدورانو د عادلانه مزد نظارت وکړي، څو استثمار رامنځته نه شي او مزدور ته د هغه د کار مطابق حق ورکړل شي.

مالکي فقهاء د کار ارزښت د ټولنیز عدالت له نظره څېړلی دی. امام مالک رحمه‌الله د "الموطأ" په کتاب کې ټینګار کوي چې مزد باید د "عرف" مطابق وټاکل شي، یعنې د وخت، ځای او ټولنیزو شرایطو په پام کې نیولو سره، څو مزدور ته معقول حق ورکړل شي او اقتصادي توازن وساتل شي.

شافعي فقهاء د کار د ارزښت ټاکلو لپاره د "عرض او تقاضا" نظریه مطرح کوي. امام شافعي رحمه‌الله په "الام" کتاب کې د مزد د توافق اصل ته اشاره کوي، چې په کې کارکوونکي او کارګمارونکي باید د مزد پر سر موافقه وکړي. دا نظریه د اقتصادي بازار له اصولو سره توافق لري، خو باید د عدالت چوکاټ په کې وساتل شي، څو مزدوران له مجبوریته ناوړه استفاده ونه ویني.

حنبلي فقهاء د کار ارزښت د اسلامي عدالت له اصولو سره تړي. دوی د مزدور د استثمار جواز نه ورکوي او د دولت رول مهم بولي، څو د مزدور د حقوقو ساتنه وشي. د حنبلي فقهې له نظره، عادلانه مزد یوازې یو اقتصادي معاملې ته محدود نه دی، بلکې یو اخلاقي او شرعي مسؤولیت هم دی، چې ټولنیز ثبات ته وده ورکوي.

اسلامي اقتصاد غواړي چې د ټولنې اقتصادي سرچینې د عادلانه وېش له مخې ووېشل شي. مزدور، سوداګر او پانګوال باید هر یو خپل مشروع حق ترلاسه کړي، خو د داسې نظام په رڼا کې چې عدالت پکې خوندي وي. د فقهي اصولو له مخې، اقتصادي عدالت یوازې د یو طبقې ګټې ته نه، بلکې د ټولنې د ټولو غړو د ښېګڼې لپاره دی، څو ټولنه د اخلاقي، اقتصادي او ټولنیز ثبات پر لور ولاړه شي.

اسلامي اقتصاد د کار او تولید ارزښت ته ځانګړې اهمیت ورکوي او د مزدور، سوداګر او پانګوال حقوق تنظیموي. مزد باید عادلانه وي، سوداګر باید رښتیني وي او پانګوال باید د اسلامي اصولو مطابق پانګونه وکړي. اسلامي اقتصادي نظام ټولنیز عدالت، شفافیت او د اقتصادي وده متوازن وېش ته ترجیح ورکوي.

# انسان های روانی، خواب های رویایی می بینند

**استوار**

به رهبری ایالات متحده امریکا ناتو وهم پیمانانش بدون اینکه از سرنوشت وشکست روس ها در افغانستان درس وپند گرفته باشند بی شرمانه خیال تسخیر این سرزمین را در سر پرورانیده وبه این سر زمین مجاهد پرور وآزادی خواه تجاوز کردند. طی بیشتر از بیست سال از هیچگونه ظلم وتعدی بالای این ملت آزاده دریغ نورزیدند

باسلاح های مدرن و طیارات بمب افگن به روستاها حمله ور شدند بالای مردم ملکی وبی دفاع هرگونه بیداد را روا داشتند، زدند وبستند وبه زندان ها افگندند.

اما ملت سر فراز وآزاده افغانستان بامناعت ووجاهت از مجاهدت در برابر این هیولای جهانی سرخم نکرده به مبارزه خویش ادامه دادند تا اینکه حامیان داخلی ایشان و متجاوزین روز تاروز از پا در افتادند وناگزیر تصمیم بر بیرون شدن از این سر زمین مقدس را گرفتند وبرای فرار وبیرون شدن راه مذاکره را در پیش گرفتند.

افغان ها که در طول تاریخ موجودیت بیگانه ها را در کشور خویش هتک حرمت دانسته برای قوای ناتو به رهبری ایالات متحده اجازه برون شدن را دادند امریکایی ها چنان سراسیمه و دست پاچه از کشورما بیرون شدند که این فرار را یک غنیمت می شمردند در هنگام فرار حامیان دست نشانده ایشان تمام پول وسرمایه کشور را باخود به غارت بردند

امارت اسلامی مسئولیت کشور را با تهی دستی تمام به دست گرفت و پول های افغانستان را همین متجاوزین در خارج منجمد نمودند با آنهم مردم افغانستان بار همین صعب وسخت را بردوش کشیدند و آهسته آهسته در تمام ابعاد زندگی مصممانه کار وتلاش نمودند.

وآنچه که تجهیزات وامکانات پس از بیست سال جنگ تحمیلی به جا ماند مطابق به قوانین جنگی درسطح جهان به عنوان غنیمت شمرده می‌شود.

اکنون پس از سه سال آقای ترامپ خواب های خیالی و رویایی در سرمی پروراند وتجهیزات نظامی خواب می بیند.

از فحوای گفتار ،حرکات وسکنات این فرد برمی‌آید که نورمل نبوده ومشکلات روانی دارد.

تجهیزات باقی مانده پس از جنگ مال وملکیت مردم افغانستان بوده وغنیمت جنگی است و از سوی دیگر سوال مطرح می‌گردد که آیا غرامت وتاتوان ویرانی های افغانستان را که می پردازد طی بیست سال تمام داشته های این کشور از دست رفت و ویران شد آیا امریکا وهم پیمانانش حاضر به پرداخت ویرانی های افغانستان استند؟

وباید هم جبران ویرانی های افغاستان را متجاوزین بردوش بگیرند زیرا عامل جنگ آنها بوده اند وباعث تمام بدبختی ها متجاوزین استند .

بهتر است آقای ترامپ روی زوایا وابعاد قضیه عاقلانه ومنصفانه فکر کند و خود را حق وناحق عصبی وناراحت



نسازد تجهیزات نظامی موجود در افغانستان ملکیت افغان ها بوده وبه کسی یک سوزن هم داده نمی‌شود.

از جهانیان متمنی ایم تا بار ویرانی های افغانستان را از متجاوزین گرفته و در آبادی این کشور جنگ زده سهم بگیرند.

شاعر در زمینه چه زیبا گفته است:

**از سنگ روزگار سر پر غرور ما**
**صدبار خونچکان شد ویکبار خم نشد**

سربلند باد مردم آزاده افغانستان

# د رحمت، مغفرت او له اور څخه د خلاصون میاشت

**منیر فاروقي**




بېشکه چې الله تعالی ډېر مهربان او پوره رحم لرونکی دی، سره له دې چې دا دنیا د امتحان ځای دی، خو متعال رب خپل بنده ته په دې امتحان کې د کامیابېدو بهانې ګوري، تر څو یې بنده په دغه ستر امتحان کې په ډېرې اسانۍ سره وکولای شي، چې بریا خپله کړي.

ورونو! که چېرې موږ او تاسو لږ سوچ وکړو، چې هغه بهانې کومې دي، چې د بریا تر پولو مو رسولای شي. نو یوه وړه بېلګه یې تاسو سره شریکوم. هغه متل دی چې (مشت نمونه ای خروار) نو په نمونه کې یې تاسو ته روژه را واخلم، چې په اړه یې الله تعالی په خپل کتاب قرآن عظیم الشان کې فرمایي: ژباړه:- (فرض کړل شوې ده پر تاسو روژه، لکه څرنګه چې فرض کړل شوې وه پر هغو کسانو چې مخکې له تاسو تېر شوي دي).

د همدې روژې په هکله چې الله تعالی په خپل کلام کې یاده کړې، سلمان فارسي رضی الله تعالی عنه فرمايي، چې د الله رسول صلی الله علیه وسلم د شعبان په اخري ورځ باندې صحابه کرامو ته عجیبه بیان وکړ، حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه فرمایي: رسول الله صلی الله علیه وسلم موږ ته د شعبان په آخري ورځ باندې دا خطبه بیان کړه: اې خلکو! په تاسو باندې یوې عظیمې میاشتې سیوری کړی،یعنې د روژې مبارکه میاشت درباندې راتلونکې ده، دا ډېره برکتناکه میاشت ده، په دې میاشت کې یوه شپه د لیلة القدر په نوم ده، چې هغه د (۱۰۰۰) میاشتو نه ډېره غوره ده، الله تعالی د دې میاشتې روژې فرض کړي او د دې میاشتې په شپو کې الله تعالی ته درېدل یعنې نوافل یې په ثواب کې د فرضو مرتبې ته رسولي.

څوک چې د رمضان په دې میاشت کې د الله تعالی د رضا او قرب حاصلولو لپاره نفلي عبادت وکړي، نو دا د هغه کس په شان دی، چې هغه په نورو میاشتو کې فرض اداء کړي وي، یعنې په دې میاشت کې د نفلو ثواب په نورو میاشتو کې د فرضو د ثواب برابر دی.

څوک چې په دې میاشت کې یو بدني یا مالي فرض ادا کړي، نو دا د هغه کس په شان دی، چې هغه په نورو میاشتو کې (۷۰) فرض اداء کړي وي، یعنې په دې میاشت کې د یو فرض ثواب د نورو میاشتو د اویا فرضو برابر دی. دا د صبر میاشت ده ځکه روژه دار په کې د خوراک، څښاک او نفسي خواهشاتو نه ځان منع کوي او د صبر بدله خو معلومه ده، چې جنت دی. دا د همدردۍ او غمخوارۍ میاشت ده، نو په دې کې له فقیرانو سره احسان کوئ. دا داسې میاشت ده، چې په دې کې د مؤمن رزق زیاتېږي.

رسول الله فرمایي: څوک چې په دې میاشت کې د الله د رضا لپاره په یو روژه دار باندې روژه ماتی وخوري، نو دا به د نومړي لپاره د ګناهونو د مغفرت او د جهنم څخه د آزادېدو ذریعه وګرځي او نومړي ته به د روژه دار په شان ثواب حاصلېږي، خو د روژه دار په ثواب کې به هېڅ کمی نه راځي.

صحابه کرام فرمايي، چې موږ نبي علیه السلام ته عرض وکړ، چې اې د الله رسوله! په موږ کې خو هر کس دا قدرت نه لري، چې په روژه دار باندې روژه ماتی وخوري، نو آیا دا غریبان به د دې عظیم اجر او ثواب نه محروم وي؟

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله تعالی دا ثواب هغه چا ته هم ورکوي، چې هغه روژه لرونکي ته د شېدو یو غړپ ورکړي یا یو غړپاوبه ورکړي، چې په هغې روژه ماته کړي او کوم کس چې په روژه دار باندې په مړه خېټه خوراک وکړي؛ الله تعالی به نومړی په خپل حوض کوثر باندې داسې سېراب (موړ) کړي، چې له هغې وروسته به نومړی هېڅکله نه تږی کېږي، تر دې چې جنت ته به داخل شي.

رسول الله فرمایي: دا داسې میاشت ده، چې د دې اول لس شپې د مسلمانانو لپاره رحمت دي، منځنۍ لس شپې یې مغفرت دي او اخیري لس شپې یې د جهنم له اور څخه د خلاصون دي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم د روژې په هکله فرمایي، چې الله تعالی فرمایي: روژه زما لپاره ده او زه به یې اجر ورکوم.

مسلمانانو ورونو! د هر نېک عمل ثواب معلوم او ټاکلی دی، چې د الله تعالی په امر یې ملایکې د انسان په عملنامه کې لیکي، خو د روژې ثواب له الله جل جلاله پرته بل چا ته معلوم نه دی، د دې اجر به یوازې الله تعالی ورکوي.

الله تعالی دې زموږ په کې نصیب وکړي او راڅخه قبولې دې کړي.

# افغان اعلانات

### دعوت به داوطلبی

د افغانستان برشنا شرکت از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی تطبیق پروژه اصلاحی ٦ کیلولت به ۲۰ کیلوولت مزار شریف دارای کود نمبر برشنا شرکت/۱٤٤٥/ داوطلبی باز ملی/ساختمان/۰۱۸ اشتراک نموده و نقل شرطنامه را به شکل سافت در حافظه یا فلش دسک از مدیریت قرارداد های ساختمان بدست آورده ،آفر های خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سر بسته از تاریخ نشراعلان الی ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر روز سه شنبه تاریخ ۲۸/ حوت/۱٤۰۳ به ریاست تدارکات دافغانستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ شهر کابل ارایه نمایند آفر های ناوقت رسیده و انترنیتی قابل پزیرش نمیباشد.

۱-تضمین آفر: مبلغ ۶۱۰،۰۰۰ ششصد و ده هزار افغانی میباشد.
۲- جلسه قبل از داوطلبی : مورخ ۱۸/حوت/۱٤۰۳ به روز شنبه ریاست تدارکات،منزل ششم برگزار میگردد.
۳-آفر گشایی: جلسه آفر گشایی روز سه شنبه ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر مورخ ۲۸/ حوت/۱٤۰۳ برگزار میگردد.
٤-آدرس و محل آفر گشایی : منزل ششم اطاق کنفرانس ریاست تدارکات.
٥-آدرس اداره: د افغاستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ ناحیه سوم شهر کابل.

برای معلومات بیشتر به شماره ذیل تماس گیرید.
شماره تماس: ۰۷۲۹۰۰۳۷۳۷-۰۲۰۲۵۱۳۶۷۷
آدرس الکترونیکی : /Akbar.kamandi@dabs.af
abdullah.afghanzoy@dabs.af

***

### اطلاعیه تغییر اسم دواخانه

محترمه مرسل بنت حیات الله ولدیت پیغمبر قل دارنده تذکره نمبر (۲۹۱۹۴۶۵۹ ) (ج ۷ ق ۱۳۹۷ص ۱۳۱ ث ۶۵۳) مسکونه اصلی ولایت بلخ مالک امتیاز دواخانه بدخشان واقع ناحیه سوم ولایت بلخ عنوانی معینیت غذا و ادویه عارض و خواهان تغییر اسم دواخانه خویش از بدخشان به اسم مهستا گردیده است.
اشخاص موسسات ودوایر دولتی در مورد ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت سه روز به آدرس معینیت غذا وادویه واقع ده افغانان تعمیر قبلی وزارت اطلاعات و فرهنگ مراجعه نمایند.۹۴۸۵

***

### اطلاعیه تغییر اسم عمده فروشی ادویه

محترم احمد الله حسین خیل فرزند صدیق الله حسین خیل دارنده تذکره نمبر ( ۳۶۵۳۰-۴۰۴-۱۴۰۰) مسکونه اصلی ولایت کابل وکیل عمده فروشی ادویه احمد شفیع ستانکزی واقع ناحیه هشتم ولایت کابل میباشد. اکنون خواهان تغیر اسم عمده فروشی ادویه خویش از احمد شفیع ستانکزی به اسم امپریال گردیده است.
موسسات ودوایر دولتی که بالای عمده فروشی توزیع ادویه مذکور ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت سه یوم به ریاست معینیت غذا وادویه افغانستان اطلاع دهند.۹۴۸۴

***

### اطلاعیه لیلام

ریاست خدمات ریاست عمومی دفتر ریاست الوزراء امارت اسلامی افغانستان به تعداد (۳۹۶) قلم جنس داغمه خویش را به تاریخ ۱٤۰۳/۱۲/۲۰ ساعت ۹:۰۰ قبل از ظهر به محضر هیئت مؤظف وزارت محترم مالیه لیلام مینماید. اشخاص انفرادی و شرکت های تجارتی که خواهش خریداری آنرا داشته باشند، میتوانند در جلسه داوطلبی اشتراک نمایند و مبلغ (۱۵) فیصد پول تضمین طور پیشکی از نزد شان اخذ میگردد.
داوطلبان میتوانند جهت معلومات مزید به شماره (۰۷٤٤۳٦٤٥۷۷) و یا (۰۷۹۷٥۲۸۹٤۷) در تماس شوند.
آدرس: تعمیر روابط عامه ساحه ۰۵ اداره امور و همچنان جوار طعام خانه عمله محوطۀ ارگ، ریاست عمومی دفتر مقام ریاست الوزراء، پشتونستان وات، کابل، افغانستان.

***

### موضوع: نشر اعلان تصمیم اعطای قرارداد تدارک سه عراده واسطه تیزرفتار!

بدینوسیله به تأسی از فقره (۱) ماده چهل و سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شود، لوی ریاست نظارت و تعقیب فرامین و احکام ا.ا.ا در نظر دارد، قرارداد تدارک سه عراده واسطه تیز رفتار را با شرکت محترم تجارتی و خدمات لوژستیکی مصطفی رضوان دارنده جواز نمبر (۸۰۲٤۰) به قیمت مجموعی مبلغ (۸،٦۹٦،٥۲۰) هشت میلیون و شش صدو نود و شش هزار و پنجصد و بیست افغانی اعطاء نماید. اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن به مقام لوی ریاست نظارت و تعقیب فرامین و احکام ا.ا.ا واقع شهر نو وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند. این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرارداد منعقد نخواهد شد.

## سږ کال له افغانستانه زرګونو سیلانیانو ...

وراندې کوي. ښاغلی بهاء وايي، چې په ۱۴۰۳ هـ ش کال کې د افغان تور اجرائیه کمیټې د ریاست په رهبرۍ او د کارمندانو په هڅو ۱۰۲ میلیونه افغانۍ عواید ترلاسه شوي چې د ټاکل شوي مالي پلان څخه ۳۰ سلنه زیاتې دي. هغه وايي، چې بهرني سیلانیان د هېواد بامیان ، هرات ، بدخشان ، بلخ ، ننګرهار ، غزني او نورو ولایتونو ته د تاریخي ځایونو او ښکلي سیمو څخه لیدنه کړې ده.ده وویل، چې افغان تور یوه انتفاعي او په ځان بسیا اداره ده چې موخې او دندې یې د توریزم په برخه کې د عوایدو راټولول او د شرکت مالي بنسټ پیاوړي کول، په هېواد کې د ننه او بهر د سیلانیانو راجلبول او د توریزم د پراختیا په برخه کې د سیلانیانو د ګرځېدا او سفر چارو پورې د اړوندو خدمتونو سرته رسول، د خصوصي پانګې جذبول، له نافذه قوانینو سره د توریزم وده او پر مختګ او نړیوالو ته د افغانستان اصیل فرهنګ او کلتور وروپېژندل، د هوایي ډګرونو څخه د سیلانیانو او مسافرینو انتقال د هېواد سیاحتي مرکزونو، جاذبو او هوټلونو ته، د بهرنیو سیلانیانو او اتباعو ته د ویزو تمدید او خروج پروسې سرته رسول، د سیاحتي شرکتونو د حج او عمرې قراردادونو تائید او اړوندو وزارت ته رسماً لېږل، بازارونو کې د سیاحتي شرکتونو او مېلمستونونو د فعالیتونو څارنه او پلټنه ده. نوموړي زیاته کړه، چې په بامیانو کې سیلانیانو ته د هوټلدارۍ خدمتونو وړاندې کول، په هوايي ډګر کې د سکرین په ذریعه نړیوالو او هېوادوالو ته د افغانانو اصیل کلتور، تاریخي او سیاحتي جاذبو ننداره کول، د سیلانیانو د جلب او جذب لپاره د افغان تور ویب پاڼه ، فیسبوک او درې میاشتنۍ مجله د افغان تور په نوم هم خپروي او همدارنګه د تاریخي آبداتو او سیاحتي جاذبو څخه په غړیز او انځوریز بڼه خپرونې ترسره کېږي.
د هغه په وینا چې د افغان تور ریاست د راتلونکې لپاره د سیاحت د ودې او پر مختګ لپاره خوراډېرې انکشافي طرحې لري چې یوه برخه یې د سیاحتي او تفریحي جاذبو لپاره په هېواد کې ځانګړې شوې ده لکه: د بامیانو د امیر بند لپاره یوه انکشافي طرحه جوړه شوې چې د اړوندو ادارو سره د همغږۍ لپاره شریکه شوې ده همدارنګه د غزني سردې او سلطان بندونو لپاره پراختیايي طرحه جوړه شوې چې د اړوندو ادارو سره شریکه شوې ده.
او بله برخه یې د افغان تور په ملکیتونو باندې پانګونه ده چې د خصوصي سکتور پر مټ به ترسره شي، چې عبارت دي په کابل کې د انصاف هوټل ملکیت چې د انصاري څلور لارې کې موقعیت لري د خصوصي سکتور په ملتیا به څو پوړېیزه ودانۍ جوړه شي تر څو سیاحتي خدمتونه په ستندرډ ډول مینوالو ته وړاندې شي، په آسمايي واټ کې د افغان تور مرکزي دفتر زوړ تعمیر په ځای به هم څو پوړېیزه ودانۍ جوړه شي او د سیاحت د ودې او انکشاف لپاره به ورڅخه ګټه اخیستل کېږي، په هرات کې د افغان تور په ملکیت کې د توریزم د ودې لپاره یوه پراختیايي طرحه په نظر کې نیول شوې ده چې ډېر ژر به د خصوصي سکتور پر مټ عملي شي.
نوموړي ریاست رییس زیاتوي، چې د افغان تور امارتي شرکت په هېواد کې د سیاحت په برخه کې تل کلیدي رول لوبولی او د توریزم د ودې او پراختیا لپاره په ۱۳۳۷ هـ ش کال د توریزم انتفاعي سازمان په نوم رامنځته شو او تر دې دمه یې د ګرځندوی سازمان تصدي ، افغان تور تصدي او فعلاً د افغان تور امارتي شرکت په بڼه خپل فعالیتونه ترسره کوي، د افغان تور امارتي شرکت مرکزي دفتر په کابل کې او نورې برخې په هرات، بلخ کندز، بدخشان، کندهار، بامیان، ننګرهار، غزني، پکتیا، خوست او نورستان ولایتونو کې فعال دفترونه لري.

**سمیع الله مومند**

## له امکاناتو په استفادې به د اوبو ...

او مسلکي مدیریت ډېر اړین او ستر ملي مکلفیت ګڼل کېږي. ملا عبدالغني برادر اخوند زیاته کړه؛ که څه هم اوبه نوې کېدونکې طبیعي سرچینه ده، خو بیا هم په اوسنۍ نړۍ کې د اقلیمي بدلونونو، د اوبو ککړتیا کچې لوړېدو، د انسانانو زیاتېدونکو اړتیاوو او له اوبو سره د انسانانو د ناسم چلن له امله په جدي توګه د هغه کمښت حس کېږي او په مسلسله توګه د کمېدو په حال کې دي.دې ناورین د هېوادونو پر خپلمنځي او نړیوالو سیاسي او اقتصادي اړیکو هم منفي اغېزه کړې ده.نوموړي وویل؛ افغانستان د اوبو پراخې طبیعي سرچینې او زېرمې لري، خو له بده مرغه د هېواد په معاصر تاریخ کې له دغه ستر نعمت سره د بېلابېلو عواملو له امله مسلکي او ملي چلن نه دی شوی، نو پر دې بنسټ اوس زموږ او ستاسې ګډ مسؤلیت دی چې لـه هرې ممکنې لارې او امکاناتو څخه په استفادې د اوبو د غوره مدیریت لپاره اساسي ګامونه واخلو.په همدې موخه د خپل حق له اوبو د ښې استفادې او مدیریت په موخه د افغانستان اسلامي امارت خپلې هڅې کوي چې یوه بېلګه یې د قوشتېپې کانال کیندل او د ځینو نورو بندونو ترل او رغول دي.د ریاست‌الوزراء اقتصادي مرستیال په پای کې د اوبو د غوره مدیریت په برخه کې ننۍ کنفرانس او دلته د پوهنتونونو د استادانو او اوبو برخې متخصصینو له لوري د څېړنیزو مقالو او تجربو شریکول مهم وبلل او هغوی ته یې د لا زیاتو او دقیقو څېړنو ترسره کولو سپارښتنه وکړه.د یادونې وړ ده، چې د اوبو نړیوال څېړنیز کنفرانس د لوړو زده کړو وزارت او کابل پولي تخنیک پوهنتون له لوري په هېواد کې د اوبو غوره مدیریت، تر ځمکې لاندې اوبو سرچینو د تغذیې، د اوبو د سالمې استفادې او ککړتیا د مخنیوي په موخه د درېیو ورځو لپاره جوړ شوی دی.یاد کنفرانس ته د امارتي ادارو یو شمېر مسئولین، د بهرنیو معتبرو پوهنتونونو استادان، د نړیوالو سازمانونو استازي او د اوبو مدیریت برخې کورني او نړیوال څېړونکي او متخصصین رابلل شوي چې ۱۳۵ څېړنیزې مقالې به پکې شریکې شي.

## اوبه د ژوند سرچینه او د هېواد په کچه یې ...

پېښې کړې دي.دغه راز په ځانګړي ډول زموږ په هېواد کې د ځمکې لاندې اوبو بې کنتروله ایستنې نه یوازې د اوبو سرچینې کمزوري کوي، بلکې محیطي او ټولنیزې بدې پایلې هم لري، چې د راتلونکو نسلونو د اوبو اړتیاوو پوره کولو لپاره جدي ګواښ ګڼل کېږي.د افغانستان اسلامي امارت د اوبو د سرچینو غوره مدیریت د وخت اړتیا ګڼي، په ځانګړي ډول د ځمکې لاندې اوبو سم کارولو او د اقلیمي بدلونونو د اغېزو راکمولو په موخه د ځانګړو تګلارو پلي کولو ته ژمنتیا لري.موږ باور لرو چې د اوبو د سرچینو د مدیریت په برخه کې د جامع حل لارو د تدوین او پلي کېدو له لارې کولی شو، د اوبو په سرچینو شته فشار راکم او دغه ارزښتناک امانت تر راتلونکو نسلونو پورې په خوندیتوب سره ورسوو.د دې مهم کنفرانس له لارې ټولو ګډونوالو ته بې ساری فرصت برابر شوی، چې د اوبو سرچینو د مدیریت او خوندیتوب په اړه خپل نظریات، څېړنې او عملي تجربې وړاندې کړي.تر څو د حل لارو په موندلو کې ترې کار واخیستل شي.موږ له ټولو څېړونکو او متخصصینو غوښتنه کوو، چې د خپل علم او تجربې په رڼا کې د اوبو د مدیریت او اقلیمي بدلون د اغېزو کمولو په برخه کې د مؤثرو تګلارو او ستراتیژیو په جوړولو کې برخه واخلي.څرنګه چې دغه مهم هدف ته رسېدل د بېلابېلو امارتي ادارو، پوهنتونونو، تخصصي مراکزو او خصوصي سکتور ترمنځ همکاري او همغږي غواړي، بناءً په ټولو اړونده اړخونو غږ کوو، چې یادې ستونزې ته د حل په موندلو کې خپل ور په غاړه مسئولیتونه ترسره کړي.د همغږۍ او همکارۍ روحیه به د پرېکړو د پلي کېدو په برخه کې مرسته وکړي او د ستونزو د حل په برخه کې به ګټور تمام شي.په پای کې د کنفرانس ګډونوالو ته د ډاډ ورکوم، چې اسلامي امارت د هر هغه اقدام کلک ملاتړ کوي، چې زموږ د مؤمن ولس ګټې او پرمختګ ورسره تړلی وي.دغه راز له ټولو هغو مسئولینو مننه کوم چې د دغه مهم کنفرانس یې رابللی، د کنفرانس تدویر لپاره یې امکانات برابر کړي او یا یې دلته ګډون کړی دی.الله تعالی دې د دوی هڅې په خپل دربار کې قبولې کړي.

**ملا محمد حسن اخوند**
**د افغانستان اسلامي امارت رییس الوزراء**

## تېره میاشت د وسپنې پټلۍ له لارې ...

له لارې ۸۴۱۸ ټنه چې ټولټال ۳۷۸ زره ۱۵۶ ټنه نفتي او نور توکي دي؛ هېواد ته وارد شوي او همدا رنګه، په دې موده کې ۳۶ زره ۷۲۷ ټنه تجارتي مالونه چې زیاته برخه یې وچه مېوه، کینو او د انارو جوس دي؛ صادر او ټرانزیټ شوي دي.د ټولګټو وزارت وايي چې هڅې کوي د لا زیاتو انتقالاتو لپاره مناسب شرایط چمتو او سوداګرو ته اړینې آسانتیاوې برابرې کړي.د یادونې وړ ده چې د روان ۱۴۰۳ مالي کال د مرغومي په میاشت کې، د افغانستان وسپنې پټلۍ له لارې ۴۰۸ زره ۸۷۶ ټنه انتقالات ترسره شوي چې له دې جملې ۱۶۹۸ټنه یې صادرات او ټرانزیټ وو.

## کابل کې د مرکزي زون د ولایتونو ...

په مشرۍ د کابل ولایت په مقام کې ترسره شوه.د کابل ولایت مقام رسنیز دفتر د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي چې په دې ناسته کې د نشه یي توکو د کښت، قاچاق، پېر او پلور د مخنیوي، د امنیت د لا ښه والي او یو شمېر نورو مهمو موضوعاتو په اړه خبرې وشوې.غونډه د عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله د فرمان د غوره تطبیق پر موضوع متمرکزه وه، څو د نشه یي توکو د له منځه وړلو او قاچاق د مخنیوي لپاره لازم تدابیر ونیول شي.د غونډې ګډونوالو همدارنګه د امنیتي وضعیت د لا ښه والي پر تدابیرو هم خبرې وکړې، ترڅو د عامو خلکو د هوساینې لپاره اغېزمن ګامونه پورته شي.د مرکزي زون د ولایتونو مسوولینو د متقابلې همکارۍ پر پیاوړتیا ټینګار وکړ، څو د یاد زون د ولایتونو ترمنځ همغږي زیاته شي او د ټولو اړینو چارو د پرمخ وړلو لپاره د مشترک پلان له مخې اقدام وشي.

## د یو شمېر تاریخي آثارو او تفریحي ...

او څرنګوالي او همدارنګه په کابل ښار کې د بابر بڼ، چهلستون بڼ، تېمورشاهي بڼ او یو شمېر نورو تاریخي او تفریحي ښونو د ساتنې او مېلمه والو ته د اسانتیاوو برابرولو په اړه خبرې شوې دي.د غونډې په پای کې، د لرغون پوهنې رییس ذبیح الله سادات، د هېواد په لوېدیځ کې د ټاپي پروژې نل لیکې له تېرېدونکو سیمو څخه د ترسره شوې سروې راپور وړاندې کړی دی.

## د بریا راز په څه کې ...

دې نه کړي که لمونځ موضایع، هوسپالنه موعادت، له بیت المال سره بې احتیاطي او رشوت و خیانت مو خصلت وګرځېد،نو قادر خدای به مو حالت ډېر ژر بدل او د دښمن له زړه به مو هیبت ختم کړي. بیا به دوستان را نه بېزار او ملګرو کې به خپلمنځي نفاق او شقاق منځ ته راځي. خو د دې برعکس که په مشرانو کې تقوا، اطاعت، عبادت، اخلاص، شفافیت او عفاف موجود وي، کشران به هم تابع، مخلص او منظم وي. لنډه دا چې که موږ هر څومره له مادیاتو او هوسپالنې ځان وساتو، سادګي خپله او له خلکو سره خواخوږي ولرو، په هماغه کچه به ځواکمن، متحد، بریالي او سرلوړي یو. یاد ساتئ چې زموږ بریا یوازې د معنوي اړخ له ښې پالنې سره تړلې ده.

## د سرخاب بند پروژه ګټې اخیستو ته ...

د اسلامي امارت مسئولین د هېواد د آبادۍ لپاره شپه او ورځ هڅې کوي او په دغه درې کلونو کې یې د هېواد د آبادۍ او پراختیا په موخه په بېلابېلو برخو کې ډېرې پروژې پلې کړې دي.په ورته مهال، د لوګر والي د دغو پروژو پلي کول د کرنې د پراختیا او د خلکو د اقتصاد په برخه کې اغېزناک وبلل او له خلکو یې وغوښتل، چې د هغوی د ساتنې په برخه کې همکار و اوسي.همدغه راز د اوبو او انرژي وزارت یو شمېر رییسانو او د لوګر ولایت سیمه ییزو مسئولینو د پروژو د کیفیت او ارزښت په هکله معلومات وړاندې کړل او د اوبو د مدیریت په برخه کې د دغو پروژو پلي کول یو مثبت ګام وباله.د یادونې وړ ده، چې د سرخاب بند د ساتنې او پاملرنې پروژه د ۱۱ میلیونه افغانیو په لګښت د اوبو او انرژي وزارت له لوري پلې شوې ده.دغه بند د نهه میلیون متره مکعب اوبو د زېرمه کولو وړتیا لري او درې زره هکتاره کرنیزه ځمکه خړوبوي، چې نهه زره کورنۍ ورڅخه په مستقیم او غیر مستقیم ډول ګټه پورته کوي. همدارنګه یاد دوه چکډمونه د پینځه میلیونه افغانیو په ټولیز لګښت پلي شوي چې په ټوله کې د ۱۶ زره متره مکعب اوبو د زېرمه کولو وړتیا لري.

## اذربایجان له افغانستان ...

یې کړه؛ اذربایجان له افغانستان سره خپلو اړیکو ته ځانګړې اهمیت ورکوي، له همدې امله یې په کابل کې خپل سفارت پرانیست او په اذربایجان کې یې د اسلامي امارت ډیپلوماتان ومنل.په پای کې د اذربایجان سفیر د بهرنیو چارو وزارت له ښې همکارۍ مننه وکړه او هم دواړو لورو د دوه اړخیزو اړیکو پر پیاوړتیا او دوام ټینګار وکړ.

## ساخت ۶ شبکه آب آشامیدنی ...

مشکلات در هر حکومت لازم است و ما از توجه و تلاش حکومت در راستای رفع کمبود آب آشامیدنی صحی مردم استقبال می کنیم.گفتنی است که شماری از داکتران ولسوالی های بلخ و چمتال به امراض ناشی از نوشیدن آب غیر صحی اشاره نمودند و از ساخت شبکه های آب آشامیدنی صحی در ولسوالی ها استقبال نمودند.

## کمک ۶ میلیون دالری جاپان ...

آسیب‌پذیر به ویژه زنان تمرکز دارد؛ در مناطق کلیدی بازگشت و ادغام مجدد، مرکزهای فرآوری و تولید لبنیات، سردخانه‌ها، گل‌خانه‌ها، مرکزهای قالین‌بافی، ابریشم‌بافی، مرکزهای تجاری و بازار، ایجاد خواهد شد؛ باشندگان بخش‌های آسیب‌پذیر برای راه‌اندازی کسب‌وکار خود آموزش‌های فنی و پشتیبانی ظرفیت‌سازی دریافت خواهند کرد.»
عرفات جمال، رئیس بخش افغانستان کمیساریای عالی سازمان ملل در امور پناهندگان، در محفل امضای این توافق‌نامه، می‌گوید که با این کمک جاپان از ۱۵ هزار بی‌جاشده‌ی داخلی و بازگشت‌خورده به افغانستان پشتیبانی خواهند کرد. «با این اقدام جدید از سوی جایکا، بیش از ۱۵ هزار افغان از برنامه‌هایی که برای تقویت خود شان، دیگران و ایجاد رونق برای جوامع بازگشت‌کننده طراحی شده، بهره‌مند خواهند شد.» جاپان و بخش افغانستان کمیساریای عالی سازمان ملل متحد در امور پناهندگان، می‌افزایند که بی‌جاشدگان داخلی و بازگشت هزاران تن از ایران و پاکستان، آسیب‌پذیری افغانستان را بیش‌تر کرده است.بر بنیاد آمار ارائه‌شده از سوی سازمان ملل متحد، افغانستان بیش از سه میلیون بی‌جاشده‌ی داخلی دارد و در بیش از یک سال گذشته، نزدیک به دو میلیون شهروند افغانستان از ایران و پاکستان نیز بازگشته اند.

## دور جدید کمپاین واکسین ...

جلوگیری کنیم.» افغانستان و پاکستان دو کشوری در جهان اند که هنوز موفق به محو پولیو نشده‌اند.در سال جاری میلادی ، ثبت یک مورد مثبت پولیو در افغانستان گزارش شده است. محمد یوسف نجمی، مسئول دفتر وقایوی صحت عامه بادغیس گفته که یک دختر پنج ساله در ولسوالی بالا مرغاب این ولایت به این بیماری مبتلا شده است.پولیو بیماری ویروسی و ساری است که تداوی ندارد و فقط واکسین می‌تواند کودکان را از آن در امان نگه دارد. این ویروس نخاع یا رشتۀ مهم عصبی در میان ستون فقرات را هدف قرار می‌دهد و باعث فلج بدن می‌شود.

Shariat
Daily

Shariat
Published by
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

شریعت
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برېښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک خلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل ـ افغانستان
شماره توزیع و شکایات: ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Tuesday 25 February 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 692

# د سرخاب بند پروژه ګټې اخیستو ته وسپارل شوه



د اوبو او انرژۍ وزارت وايي، لوګر ولایت کې د سرخاب بند د ساتنې او پاملرنې پروژه او د دوو چک‌ډېمونو پروژې ګټې اخیستو ته وسپارل شوې.په دې اړه جوړو شویو مراسمو کې د اوبو او انرژي وزیر ملا عبداللطیف منصور، د لوګر والي شیخ ضیا الرحمن مدني، سیمه ییزو مسئولینو د یاد وزارت د یو شمېر ریيسانو او د سیمې د ګڼ شمېر اوسېدونکو ګډون کړی و.د اوبو او انرژۍ وزیر په دغه مراسمو کې د سرخاب بند ارزښت د محمد اغې ولسوالي د خلکو لپاره حیاتي وباله او د دغه بند د ساتنې او پاملرنې پروژې بشپړېدل یو ارزښتناکه لاسته راوړنه وبلله.ملا عبداللطیف منصور ټینګار وکړ، چې ... ۳مخ





## فرانسه کې د روسیې پر کونسلګرۍ راکټي برید شوی

د فرانسې په مارسي ښار کې د روسیې سرکونسل استانیسلاو اورانسکي د کونسلګرۍ دننه د چاودنې پخلی کړی دی. په دې اړه د روسیې د بهرنیو چارو وزارت ویاندې ماریا زاخاروا له فرانسې غوښتي چې د موضوع په تړاو دې بشپړ او چټک اقدامات تر سره کړي.په مارسي ښار کې د روسیې کونسلګرۍ ویلي، په لاس جوړ شوي درې بمونه د کونسلګرۍ پر لور غورځول شوي، خو ځاني زیان یې نه دی اړولی.تېره ورځ هم د فرانسې مولهوس ښار کې یو الجزایري وګړي د چړې په ګذارونو یو کس وژلی او پنځه پولیس یې ټپیان کړي وو.



## زیلینسکي: که په استعفا مې اوکراین کې سوله راځي نو چمتو یم

د اوکراین ولسمشر ولادیمیر زیلینسکي په خپلو تازه څرګندونو کې ویلي، چې که په استعفا یې په اوکراین کې سوله ډاډمنېږي، تیار دی چې دا کار وکړي. نوموړي په یوه خبري کنفرانس ته ویلي چې چمتو دی په ناټو کې د غړیتوب په بدل کې استعفا ورکړي. له دې وړاندې د امریکا دفاع وزیر پیټ هګېست ویلي و چې په ناټو کې د اوکراین غړیتوب «ناشونی» دی. پر زیلینسکي د امریکایي ولسمشر ډونالډ ټرمپ نیوکې دوام لري او نوموړی یې په اوکراین کې د جګړې عامل بللی دی. خو زیلینسکي زیاته کړې چې «موږ باید خپله ټوله هڅه وکړو چې په اوکرایین کې عادلانه سوله رامنځته کړو.



## جرمني کې د مېرخ محافظه پال اتحاد د ائتلاف جوړولو په لټه کې دی

د جرمني مسیحي دیموکرات او مسیحي سوسیال ګوندونو اتحاد د دغه هیواد عمومي پارلماني ټاکني وګټلې او د ائتلاف جوړولو له پاره په خبرو اترو پیل کوي. بل لوري ته نړیوالو مشرانو فریدرش میرخ، او د هغه اتحاد ته مبارکي ورکړې ده.د جرمني د ټاکنو کمېټې د معلوماتو په حواله د دې پارلماني ټاکنو وروستۍ او رسمي پایلې به د مارچ میاشتې پر ۱۴مه نېټه اعلان شي. د جرمني د مسیحي دیموکرات ګوند به د یوه نوي ائتلاف جوړولو له پاره په خبرو اترو پیل وکړي. د دغه ګوند مشر او صدراعظمۍ ته کاندید فریدرش میرخ، یو ځل بیا ټینګار کړی دی چې د ډېر ښي اړخه «جرمني له پاره بدیل» ګوند سره به چې د محافظه پال اتحاد وروسته یې تر ټولو ډېرې ۲۰،۸ سلنه رایې اخیستې دي، ائتلاف جوړ نه کړي.د مسیحي ګوندونو اتحاد د ۳۰ سلنه رایو اخیستل خپل هدف اعلان کړی وو. که څه هم چې دا اتحاد خپل هدف ته په دقیقه توګه نه دی رسېدلی، خو په ټاکنو کې تر ټولو قوي ګوند شو او په دې وتوانید چې د ۲۰۲۱م کال د ټاکنو په پرتله ۴،۳۲ سلنه ډېرې رایې په لاس راوړي.



## اذربایجان له افغانستان سره د دوه اړخیزو اړیکو پر پیاوړتیا او دوام ټینګار کړی



د بهرنیو چارو وزارت له مالي او اداري مرستیال دوکتور محمد نعیم د اذربایجان له سفیر الهام محمدوف سره لیدنه وکړه.په دې لیدنه کې د افغانستان او اذربایجان ترمنځ د دوه اړخیزو سیاسي، اقتصادي او فرهنګي همکاریو پر پراختیا خبرې وشوې.د بهرنیو چارو وزارت مالي او اداري مرستیال د "کوپ ۲۹" غونډه کې د افغان پلاوي د ګډون او د اذربایجان له همکاریو د مننې ترڅنګ، د دواړو هېوادونو ترمنځ اړیکې مهمې وبللې او د دې اړیکو د لاپیاوړتیا هیله یې څرګنده کړه.محمدوف د اذربایجان او افغانستان ترمنځ د دوه اړخیزو همکاریو او پرمختګونو یادونه وکړه او زیاته ... ۳مخ

## د اسلامي امارت لوړ پوړی پلاوی ایران ته رسېدلی

د اسلامي امارت د کورنیو چارو وزارت د مخدره توکو پر وړاندې د مبارزې مرستیال عبدالحق اخوند د ایران د اسلامي جمهوریت په رسمي بلنه د لوړ پوړي پلاوي په مشرۍ تهران ته رسېدلی،د اسلامي امارت د کورنیو چارو وزارت ویاند عبدالمتین قانع ویلي چې د دې سفر موخه د دواړو هېوادونو ترمنځ له مخدره توکو سره د مبارزې په برخه کې د همکارۍ د پراخولو په اړه بحث او د نظرونو تبادله وي.



## سږ کال له بامیانو څه باندې ۸۰۰ میلیونه افغانۍ راټولې شوې

د بامیان ولایت د والي ویاند عبدالصبو سیغاني رسنیو ته ویلي چې سږ کال د دغه ولایت له اوو ولسوالیو څخه له ۸۰۰ میلیون څخه زیاتې افغانۍ راټولې شوې دي. هغه زیاته کړه چې د راپور ورکولو غونډه د ولایت د والي، د بامیان ښاروال، ولسوالانو او د اوو ولسوالیو ښاروالانو په شتون کې جوړه شوه. په همدې حال کې، د بامیان ولایت د اوو ولسوالیو ولسوالانو په ولایتونو کې د پراختیایي او زېربنايي پروژو لکه د ښوونځیو، روغتیایي مرکزونو، سړکونو، پلونو او پلچکونو د جوړولو، د روغتیا او کرنیزو اوبو رسولو شبکو د جوړولو، د مخابراتي سایټونو د جوړولو، د استنادي دیوالونو د جوړولو او نورو اساسي اړتیاوو د پلي کولو غوښتنه وکړه. د ولایت والي مولوي عبدالله سرحدي وویل چې د خلکو د ستونزو او اړتیاوو د حل، د امنیت د تامین او د ولسوالیو په کچه د پرمختیایي پروژو او زېربناوو د پلي کولو لپاره به اغېزمنې هڅې وکړي.

## ساخت ۶ شبکه آب آشامیدنی صحی در بلخ



مولوی یار محمد شبیر، رئیس احیا و انکشاف دهات ولایت بلخ می گوید: شش شبکه آب آشامیدنی صحی به ارزش بیش از ٢٤ میلیون افغانی در ولسوالی چمتال و بلخ این ولایت ساخته شده است.وی اظهارداشت که این شبکه های آب آشامیدنی شامل سه دربند حوض سرپوشیده، سه ذخیره آب و سیستم برق آفتابی می باشد و به مدت یک سال ساخته و به بهره برداری رسیده است.مولوی شبیر افزود: بیش از ۹۰۰ خانواده در ولسوالی های بلخ و چمتال از این شبکه های آب آشامیدنی صحی مستفید شده‌اند.

در همین حال، شماری از ساکنان ولسوالی های چمتال و بلخ ولایت بلخ می گویند: تطبیق پروژه های زیربنایی برای رفع و حل ... ص۳

## کمک ۶ میلیون دالری جاپان برای افراد آسیب‌پذیر در افغانستان



جاپان و بخش افغانستان کمیساریای عالی سازمان ملل متحد در امور پناهندگان دیروز توافق‌نامه‌ای را به هدف پشتیبانی از بی‌جاشدگان داخلی و بازگشت‌خوردگان به افغانستان، امضا کردند. تاکایوشی کورومیا، سفیر جاپان در کابل، می‌گوید که بر بنیاد این توافق‌نامه کشورش شش میلیون دالر به بخش افغانستان کمیساریای عالی سازمان ملل متحد در امور پناهندگان کمک می‌کند. او می‌افزاید: «این کمک به ایجاد پایداری و توان‌مندسازی بخش‌های ... ص۳

## دور جدید کمپاین واکسین پولیو در ۱۶ ولایت آغاز شد



کمپاین تطبیق واکسین پولیو یا فلج کودکان دیروز در ۱۶ ولایت افغانستان آغاز شد.شرافت زمان سخنگوی وزارت صحت عامهٔ امارت اسلامی به رسانه‌ها گفت که در جریان این کمپاین چهار روزه نزدیک به شش میلیون و سه صد هزار کودک زیرپنجسال واکسین خواهند شد.او افزود: « خواست ما از بزرگان قومی، علمای کرام و ساکنان محلی این است که با واکسیناتوران همکار باشند تا بتوانیم با تطبیق بهتر واکسین از ویروس وحشی پولیو در افغانستان ... ص۳